# محترمو لوستونکیو!

ادبي سوغات چې د استاد سرمحقق ع. ب خدمتګار په زيار راټول شوی او الفت اکاډمۍ نشر ته سپارلی، ستاسې مخې ته ږدو امید لرو چې د ادب مینان به يې په لوستلو خپله ادبي تنده ماته کړي.

همدا راز د رحمان بابا دغه شعر یو ځل بیا د پښتو ژبې اديبانو ته د اقتفا او پیرو لپاره له دې هيلې سره وړاندې کوو چې زمونږ ځوان شاعران به د خپلو لويو استادانو په پله پل کيږدي. ټول هغه دوستان چې ددې شعر په پیرو کې لیکنې کوي، خپل اشعار مونږ ته په لاندې آدرس رالیږلای شي

webmaster@hewad.com.

نور مو وخت نه نیسو دا تاسې او دا هم ستاسې ادبي سوغات.

ستاسې شعرونو ته سترګې په لار
د "هیواد" مسئوله ډله

# ادبي سوغات

د

سرمحقق عبدالله جان بختاني خدمتګار

ټولونه، سریزه او یادونې

محرم الحرام ۱۴۲۳

# دمجموعې پېژندنه


| | |
|---|---|
| نوم: | ادبي سوغات |
| ټولونه، سريزه او يادونې: | د سرمحقق خدمتګار |
| ناشر: | الفت اکاډمي |
| مهتمم: | عبدالرحيم بختانی |
| کمپوز: | شفق |
| دچاپ نېټه: | مارچ ۲۰۰۲ م |
| دچاپ ځای: | دانش کتابتون |
| شمير: | يو زر نسخې |

# اهداء:

دفلسفي سياسي دقيق نظر خاوند
دانشمند ليکوال او متفکر شاعر
جناب محترم سيد شمس الدين مجروح ته.

په درناوي
ع - خدمتګار بختانی

# ګرانو لوستونکو!

ددې مجموعې حـجم ډیر وړوکی دی، مګـر په معـــــنوي لحاظ ډیر لـــــوی او لــــوړ ارزښت لــــري.

دا چې مشر مجروح صاحب د رحمان بابا د شعر په زمـکه غــزل لیکي، الفـت صاحب پرې مشاعره جوړوي، حمـــــزه صاحب یې رنګ او خوند زیاتوي، نور تکړه شاعران پکښې برخه اخلي او بیا بختانی صاحب ترې د ګلو ګیډۍ جوړوي او د خپرولو لپاره یـې ځــولۍ غــوړوي دا پخپله لوی ارزښتمن کار او لویه خبره ده.

ښایي چې اهل نظر ورته په درانه نظر وګوري، دعالي ذوق خاوندان ترې خوند واخلي او د ادب مئینان یې قـدرداني وکړي.

په خپل وار، مونږ په ډیره خوشحالۍ، په دې ګلورین پسرلي کښې، د ادب دا رنګینه پاڼه، د مـشرانو دا رنګین سـوغات د هــــیواد د رنګارنګو ګلونو له خوږو وږمو سره یو ځای خپروو او وایو:

الله پاک دې سرمحقق خدمتګار ته د نورو فرهنګي خدمتونو له زیات توفیق سره خیر او برکت ورکړي. آمــــــــــین

میرویس الفـت

الفت اکاډمي – د ۱۳۸۰ د حوت ۲۱ مه

# دوه درې خبرې

۱ – له نن څخه شپاړس کاله د مخه، ما پر دې ( ادبي سوغات ) لنډه سریزه ولیکله. د افغانستان د لیکوالو ټولنې ته مې وړاندې کړه. ټولنې فیصله وکړه چې د ( ژوندون ) مجلې د هدیې په توګه دې چاپ شي مجموعه دولتي مطبعې ته ولاړه مګر ډیر افسوس چې د مجلې یا انجمن د ځینو کارمندانو د سبوتاژ لامله د انجمن رسمي فیصله عملي نه شوه. په داسې حال کښې چې زه پخپله د همدغې ټولنې د ریاست لومړی مرستیال او منشي هم وم ..................

۲ - له نن څخه اوه کاله د مخه، د ۱۳۷۳ هجري شمسي کال د جدي په ۲۷ ، زه په پېښور کې وم. د بي بي سي د ډرامو دفتر ته ورغلم چه افغاني لیکوال شاعران یاران دوستان وګورم. د پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي پخوانی استاد ښاغلی عبدالخالق رشید ، چه نوی مهاجر شوی و ، هم هلته کار کاوه. ما سره یې ( ادبي سوغات) ولید ، خوښ یې شو ، له ما څخه یې واخست، ویل یې: زه دا چاپوم. ما ترې فوتوکاپي واخسته. راغلم. بیا اوړی کابل ته ولاړم. هلته خبر شوم چه استاد رشید کابل ته راغلی او بیا هندوستان ته ځي. د ډیلي د جواهرلعل نهرو په نامه د پوهنتون د پښتو ژبې او ادبیاتو استاذ شوی دی. هغه ما ونه لیدی شو او ولاړ. تر اوسه یې کوم خط خبر نه دی راغلی او لا نه پوهیږم چه مجموعه یې ورکه کړې؟ ساتلې؟ او که چاپ کړې ده.

۳ - د ۱۳۸۰ هـ ش دحوت په ۲-۵ ورځو کښې، د ۱۴۲۲ هـ ق د لوی اختر ورځې وې، زورور بارانونه وریدل، ما په کور کښې په خپلو زړو کاغذونو ګوتې وهلې هغه فوتوکاپي مې ترلاس شوه، ډیره تنده وه او د لوستلو نه وه ما له سره ولیکله او د چاپولو په فکرکښې یې شوم.

پرون، ښاغلي میرویس الفت ته مې دا کیسه وکړه هغه په ورین تندي وویل: "بې غمه اوسه!".

- ښایې چه ګران لوستونکي، ددې لنډ داستان په نتیجه کښې، دې ته هم رسیدلي وي چې دلته دیوکوچني اثر چاپول څومره ستونزې لري؟ اوددې له مخه مونږ د تاریخ په کوم کولتوري معیار کې واقع یو؟

فاعتبروایااولی الالباب

خدمتګار بختانی

بختیان کلی – د ۱۳۸۰ دحوت شلمه

# ادبي سوغات

دپښتو ډير ښاغلي او منلي شاعران تير شوي دي چې د پښتو ادب ارزښتمنه خزانه يې د خپلو شعرونو په مرغلرو لا ښائسته او ښايه کړې ده. په دوی کښې رحمان بابا بل راز شاعـر دی او شعـرونه يې بل رنګ تاثير لري. پښتـانه هغه لسـان الغيب بولي، په ديوان يې فال نيسي، په شعر يې استشهاد کوي او د "بابا" په ستـر لقب يې نمانځي.

شعر پيژندونکي د رحمان بابا شـعر "سـهل ممتنع" ګڼي او ډيرو شاعرانو د هغه د ډيرو شعرونو اقتفـا کـــــړې ده.

د هـــغه پر مزار، په ادبي غـونډو، راډيـوګانو او خـپرونو کښې،هر پسرلی د رحمان بابا کاليزې مشاعرې کـيږي. دغـه مشاعرې زياتره، د هغه د هـنر او شـخصيت په يادونو او سـتاينو درنښت مومي او د هـغه د ځينو شعرونو په پيروۍ ښـکلې کـيږي.

د رحمان بابا د شعرونو اقتفا او د هغو پر طرحو مشاعرې د پښتو ادبياتو د تاريخ د رحمان پيژندنې د فصل يوه په زړه پورې موضوع ده چې دلته مونږ هغه پريږدو او يوائې د رحمان بابا يو غزل او د هغه د اقتفا د لړۍ شعرونه وړاندې کوو.

دا کار معاصر لوی اديب او شاعر مرحوم ګل پاچا الفت پيل کړی دی. يو وخت هغه د "روزګار" جريدې ته يو ليک، د رحمان بابا يو غزل او د هغه په پيروۍ د محترم سيدشمس الدين مجـروح، ښاغلي امير حمـزه شينواري او خپل شعرونه وليږل. دا "ادبي سوغات" د روزګار د جـريدې د ۱۳۵۰ هـ ش د ثور د ۱۵مې ( د ۱۹۷۱ م د مـئی پنځمې ) نيټې په ګڼه کښې خـپور شو. د همدې ورځې په مازيګر، ما د جـريدې دغه ګڼه واخيستله. په بله ورځ مې خپل شعر د جـريدې ادارې ته وسـپاره چې په بله ګڼه کښې چاپ شو او بيا د هيواد څو تنو تکړه شاعرانو پکښې برخه واخيستله.

ما هغه شعرونه راټول او ددې مجموعې د پای دوه شعـرونه مې پرې زيات کړل په دې ډول يوه ښـــکلې رنګـــينه ګلـــګيډۍ ترې جوړه شوه.

په دې شعرونو کښې سربيره پر هنري ادبي ارزښت د هغه وخت او چاپيريال د اجتماعي بهير انعکاس هم ليدل کيږي او د هر شاعر د فکر پلوشې هم ترې څرګنديږي. په دې ډول ارزيابيو کښې، زه خپل نا ارزه بيتونه شامل نه ګڼم. بلکه په دې خوښ يم چې د رحمان بابا مقام ته، د ارادت او اخلاص په مقام کښې، ماته هم د عالي مقامو استادانو د پيروئ وياړ را په برخه شوی دی. په همدې خلوص د رحمان بابا د يادونو او مشاعرو ددې ښکلي ګلورين موسم په فضا او د سولې، مصالحې او روغې جوړې، ددې رنګين پسرلي د "ژوندون" په زمينه کښې دا ادبي سوغات ستاسو مخې ته ږدم. له شعرونو به يې هم خوند واخلئ او د مشاعرې له بهير نه به هم خبر شئ.

په درناوي
ستاسو خدمتګار عبدالله بختانی
د ۱۳۶۹ د ثور ۱۶ مه

# د الفت لیک

ښاغلي فرند[1] د روزګار مسئول مدیر صاحب!

هغه وخت چه ښاغلي مجروح صاحب[2] په متحده عربي جمهوریت[3] کښې د افغانستان سفیر و، ما ته یې د ادبي سوغات په توګه خپل یو شعر را واستاوه چه د رحمان بابا د دې شعر په پیروئ لیکل شوې و:

ډیر عمر مې تیر کړ ببهوده په زمانه
نور دې زما سر وي او د ترکو آستانه

دا شعر چه ما ته ورسیده، ما هم په دغه وزن او قافیه یو شعر ولیکه او هغه ته مې ولیږه.

کله چه حمزه صاحب، د غزل استاد، کابل ته راغې او دا دوه شعرونه یې ولیدل، هغه هم یو شعر ولیکه او په دغه مشاعره کې یې برخه واخسته. ورم کال[4] چه د پیښور مشهور شاعران او لیکونکي د افغانستان د استقلال جشن ته راغلل او د بیرته تګ په وخت کښې یې د خدای پامانئ دپاره په کابل کښې زما کور ته تشریف راوړ، دا شعرونه هلته ولوستل شوه او ښاغلي اجمل، مهدي او قلندر وعده وکړه چه په دې مشاعره کښې به ګډون وکړي او خپل شعرونه به را واستوي. ښایي چه د هغه ځای مصروفیتونو دا وعده هیره کړې وي ځکه د هغو اشعار را ونه رسیدل.

دا څو شعرونه چه ما سره دي، د روزګار جریدې ته د نشر دپاره در استوم. ګوندې د ادبي ذوق خاوندانو ته مقبول واقع شي.

په احترام
الفت

---

یادونې:

۱ — محمد یوسف فـرنـد چه اصلاً د سره رود د شمسه پورو څخه دی. لوړ تحصیلات لري په دغه وخت کې یې د روزګار اوه نیزه بې طرفه جریده چلوله.

۲ — ښاغـلي محترم سید شمس الدین مجـروح د پښتو او دري دانشمند شاعر او لیکوال

۳ — مصر

۴ — ۱۳۴۸ هـ ش کال

# بېهوده عمر [۱]

ډېـــــر عـــــمر مــــې تيــــر كـــــړ بېـــــهوده په زمانه
نــــــور دې زمـــا ســــــر وي او د تركو آســـــتانه

هيڅ مې حاصل نه كـړه په شـــيخئ او په تقـــوا كښې
پس لــه دې مـــې وار دى هر څـه [۲] شــي په مـــيخانه

شـــيخ و شـــيخي ورد او [۳] وظيـــفه او ذكـر فــكر
زه او ســــــاقي جــــــام وبـاده چـنګ وتـــــرانه

زه و زاهـــــدانو تـــه حــــيران يـــم دوى و مـــا ته
ديـــوانه بـده خــــــــــندد و ده به ديــــــــوانه

ګنج د درو [۴] ځار [۵] شه د عاشـــق تر څاځكي اوښـو [۶]
نـــه خـــــروار د عقــــــل نـــه د عشــق يــوه دانـه

تيــــــغ د يار له لاســــــه په مــرئ دعـاشــقانــو
هســــــــې لـذت كـا لكــــه د ميـــــو پيمانـه [۷]

خـــــداى لـره بــه درشــم پــه سـودا د يــار لـه مـخـه
بـــــل مقصـــــود مــــې نشـــــته په كعـــــبه په بتخانه

زه لـــه ډېـــرې مـــــينې پـه تش بـوى د يار شـيدا يم [۸]
تـــل د لنـــدو خـــــتو اوبه لــــــــــړوى بهـانــه [۹]

ځکــه زاهــد زهــد کـاد یـــو جـــنت دپـــاره
ســـــر ښـــندلـی نه شــــي پــه اوربـــــل د جـانانه

ګـوره د منـصـور هسـې په دار[10] نـه شـې رحـــمانـه!
بـې نـــام و نشــــان شــه کـه يې غــوارې نشـانه

رحمان بابا

---

یادونې:

(۱) – د رحمان بابا دغه شعر له دغه عنوان سره چاپ شوی دی. ښایي چه الفت صاحب به دغه عنوان ورکړی وي. الفت صاحب پخپله شاعر او شعر پیژندونکې و. دا شعر یې هم په ډیر دقت له کوم باوري متن څخه اخستی دی. سره ددې هم په ۱۳۵۹ هـ ش کښې، د پښتو ټولنې له خوا د رحمان بابا د دیوان له چاپ شوې نسخې سره ددې متن فرقونه ښودل کیږي.

(۲) – چاپي دیوان: چې

(۳) – چاپي دیوان: و

(۴) – د الفت صاحب نقل: عقل

دلته ما ته د تشبیه او د لف و نشر مرتب د صنعت له مخه د چاپي دیوان عبارت (درو) غوره ښکاره شو، نو ځکه مې په متن کښې واخیست. په دې صورت په اوله مصرع کښې د (درو) او (اوښکو) تشبیه څرګنده ده او د دوهمې مصرعې (خروار د عقل) د لومړۍ مصرعې (ګنج د درو) او د دوهمې مصرعې (د عشق یوه دانه) د لومړۍ مصرعې (د اوښکو څاڅکې) پورې ارتباط نیسي.

(۵) – په دواړو متنونو کې: راز

(۶) – چاپي دیوان: اوښکو

(۷) – چاپي دیوان: هسې لذت کاندي جوړ د میو پیمانه

(۸) – چاپي دیوان: شوم

(۹) – چاپي دیوان: تل د لمدو خټو لړ اوبه دي بهانه

(۱۰) – اصل: وار. چه طبعاً طباعتي غلطي ده

(۱۱) – چاپي دیوان: بله نشانه

وګورئ:

د ذکر شوي دیوان ۱۷۱/۲ مخونه

# پښیمانه

سترګې مې دي وړې د زړه کور مې ویرانه
حلق مرۍ مې وچه غواړم ډکه پیمانه

ای ساقي باداره! زما لاس او ستا لمن ده نور
بیا به قدم کښې نه ږدم په بله آستانه

ځان مې خوشې ستړی په لوستلو د کتاب کړ
هیڅ د حقیقت ور پکښې نه وه نشانه

لاړمه بازار ته چال چلند یې چل و ول و ټول
بحث و جنجال و هلته په سپک او په درانه

ورغلم وستل[1] ته د مشرانو هلته غونډه وه
زوږ شور او غوغا وه چه دا وکړو که دا نه؟

دا د سیاست میدان میره خوشې سراب و
لاړمه په طمع د اوبو زه دیوانه

لاړمه مسجد ته مدرسې ته ور دننه شوم
هلته قیل و قال و په روا نه[2]

قول که عمل که فکر او خیال دی ټولنه کښې
هر څه کښې پرته د یوه د وهم زولانه

کښېناستمه کور کښې خپلخانې مې راته وویل:
ځه!(۳) دلته دې نشته نور نه آب او نه دانه

اوس مې پناه راوړه ستاسو سیمې ته، رندانو!
دا د هر چا کور دی، خرابات او میخانه

دا چې مې د درد علاج نه عقل نه تدبیر وکړ
ولې نو ځان خلاص ورځنې نه کړم مردانه

غوارم د مستۍ ښکلې دنیا چې هلته نشته دی
چل فریب نه مکر نه ریا نه بهانه

مینه غوارم ساز غوارم سرود غوارم نڅا غوارم
ډکه خوله خندا او سترګې مستې جانانه

ما نیولی پیر رحمان امام د شاعرانو
وایم په حجره کښې د ده ښکلې ترانه

(ټول عمر مې تیر شو بیهوده په زمانه
نور دې زما سروي او د ترکو آستانه)

سید شمس الدین مجروح

---

یادونې:

(۱) — وستل: د کلي مخې ته د خلکو د ټولیدو او جرګې ځای.

(۲) — ناروا

(۳) — په اصل کښې: زه

# رندانه نظر[۱]

هر څه بل راز وينم بيا نظر شو رندانه
و مې لېده تشه دا د عقل پيمانه

ناوري څوک ناصحه! هغه تش نصيحتونه
ووايه شاعره! حقيقت بې باکانه

شيخ دې خپله ږيره کړي شانه د بل دپاره
ما دی زړه بايللی په اوربل د جانانه

چيرته سپينه ږيره چيرته ول ول توري زلفې؟
چيرته د بوډا تګ چيرته تګ خرامانه

نور څه ترې نه غواړم محبت غواړم له ښکلو
ده ما ته کافي يوه خندا صادقانه

هر څه ورکول اهل ته ښه وي له نا اهله
تل لره نظر اهل نظر ته دوستانه

عقله! ته ما پرېږده! ستا له لاسه ډېر په تنګ يم
غواړمه ژوندون لږ څه آزاد شاعرانه

ښه مې په ځير ځير چه وکتل سياستونه
مکر و، فريب و، غولول ماهرانه

وي به ډير ښه لال [۲] د سياست د ښامارخوله کښې
ورشه کـه لـري مـنتر افـسون سـاحـرانه

مـه غـوارې لـه مـا نـه سـياسي مـهارتـونـه
راغـلمه پاک زړی سـياست نه بيـګانه

هغـه چـه د وخت حـاکـم تـه وايـي زمـامـدار
ځـانتـه قـايلـيږي په جلب او ګاوخـانه

کلـه آزاديـږي د عـمـرو اسـير فـکـرونـه؟
خـداى دې د چـا نـه کـړي ذهنيت [۳] غلامانه

وايـي غـلامـان په غـلامئ باداران شـوي
واوره د مـحـمـود او ايـازانـو افسـانه

مـونږ لا اسـيران يـو د خـانـانـو د پـيرانـو
يـو د مـکر دام لـري او بـل يـي زولانـه

ګـرځـوي پـه لاس کښې د تسـبو دانـې مـدام
مـه وايـه چـه دام د زاهـد نه لـري دانـه

وږي يـو بـربنـډ يو خـواري ده زمونږ په برخه
برخـه د ځـو تنو عـياشي بې شـرمانـه

نـه لـري د جـوار دانـې پـه کـور کښې دهـقانان
تـل د آغـا کـور کښـې د کـباب پتـه دانـه

ډيـر خـلـک پـه بند کښې دي د لـږو صـاحبانو
خـان او بيـګ لـري د طلسـمونو جـيلخـانه

نه شي په چل ول له اسارته خلاصيدلی
يو اقدام پکار دی رندانه او مردانه

دا د خان نوکر که هر څه بد وايي الفت ته
غواړم له آزادو قضاوت آزادانه

ګل پاچا الفت

---

یادونې:

**(۱) —** په روزګار کښې د حمزه صاحب شعر د مخه او وروسته د الفت صاحب چاپ شوی دی. دا د الفت صاحب د تواضع نتیجه ده. هغه پخپله شعرونه دغسې ترتیب کړي وو. دلته د الفت صاحب شعر د مخه شو، ځکه چه د شعر د ایجاد د تاریخ له مخه دا یې حق دی.

**(۲) — لعل،** پښتانه (لال) بولي. دلته دغه معنا څرګنده ده د ښامار په خوله کښې لعل د پخوانو فولکلوري افسانو یو مضمون دی. لال، په فارسي کښې ګونګي ته هم وايي دا دې ته هم اشاره کیدی شي چه د هغه وخت د مسلط سیاست ښاماران زیاتره په ژبه لال، یعنې ګونګي او تړتړي وو. سمه او څرګنده خبره یې نه کوله او په ساحرانه منتر او افسون غوندې خبرو به یې خلک تیر ایستل.

**(۳) —** په اصل کښې: خدای دې چا نکړی ذهر نهیت. چه دا څرګنده طباعتي غلطي ده.

# غزل

ولیکه قلمه! یو غزل ښه جانانه
پریږده چه ویېږي دا دوه ژبې زمانه

مینه د زلفانو بې له خاله (پښیماني)[2] شي
نه ورتله (تش دام) [3] ته وي چه نه لري دانه

پورته شه بیان په افسانه کښې حقیقت کړه!
بیا له حقیقت نه راښکاره کړه افسانه

چیرته جمیعت چه پریشاني دې ده په برخه
ښکلیه جوړوم دې د کمځیو بهانه

خوی چه د ساقي مې دریابي غوندې ښکارېږي
نن مې جوړ په کار شوه لغزشونه مستانه

تا چه کړه را ورانده مې په نه زړه ورته لاس کړو
لاړه ساقي لاړه په دې منځ کښې پیمانه

حسن هغه یو دی چه په هر محل کښې ښکاري
ځان چه غورځوي په هره شمعه پروانه

یا خو دا خپل غږ راته پردې غوندي ښکاریږي
یا مې جنون وکړه ابتدا په ویرانه

شیخه ! د رښتیا ویل په خوند به هله پوه شې
ستا چه د حمزه غوندې مشرب شي رندانه

امیر حمزه شینواری

---

یادونې:

(۱) — په روزګار کښې ددې شعر د عنوان پر ځای: "بې عنوانی" عنوان شوی او زه نه پوهیږم چه دا به چا کړی وي؟ خو دومره پوهیږم چه د پښتونخوا شاعران غزل ته عنوان نه ورکوی او که ورکړي نو بیا (غزل) لیکي. نو ځکه ما د (بی عنوانی) پر ځای (غزل) عنوان کړ.

(۲) – د ښاغلي مجروح د شعر عنوان (پښیمانه) ته اشاره ده.

(۳) – د روزګار د جریدې د لیکنې له مخه او د الفت صاحت د شعر عنوان (تش دام) و، مګر اوسنې عنوان یې (رندانه نظر) دی، او د حمزه صاحب لومړني عنوان ته ده.

د رحمان بابا په اقتفا
دالفت صاحب په مننه

# تشــه تــرانه

چـاتـه چـه کعــــبه وي د ســــــــتانه او اســانــه
مـه غــوا ړئ هغــــو ځنـــې خـــبرې رنــدانــه

ژبـه چه شي غــوره په اغـا ! بلـې! صـاحب باندې
نه شــي چلــــيدی بيــا په رښـــتيا صـادقــانه

غــــله زمــــونږ د مــال و د نامــوس او د ابرو دلته
غـــــــوا ړي عـــزتــونـه مــونږ نـه هم احــمقانه

نـس ډکــوي دلـــته مـــګر زړه يې امــريکـــې وړی
خـــدايه! لـه وطــنه هيڅــوک مه کــړې بيــګانه

څـــو پــورې به نورو لـــره ګــورو او پسخيږو مونږ؟
راشـــئ چـــه ودانه کـــړو دا خـــپله ويــرانه

دې ماړه هــيواد کښې به تر څـو پورې مـونږ وږي يــو؟
وباسـئ د غــلو لــه جــيبه پټـه خــــــزانه

خــلک مـــو په کلــيو کښې ړنديږي د شـرمبو پسې
غـوا ړي څــوک په کــومـو ســــترګو ډکه پيمانه

عصــر د سپوږمۍ کښې لا سپوږمۍ مې په کيږدئ ده
دا يــو حــقــيقــت دی نــه چــه هســې افـــسانه

نــه کــیږي هـیـچـېږې په یو ګل پســـرلي نه کیږي[۱]
راشـــئ چــه کـــړو جـــوړه لــه وطــن نه ګلـــخانه

پـــیر د زمــانې کښې څـه تــوندي پـه تــوندئ راولـه
عمـــر ضـــایع مــه کـــړه بیـــهوده پـــه زمـــانــه

مینه غــواړي، درد غــواړي، عمل غــواړي، ایثار غــواړي
نــه شــي جـــــوړیـدی وطـــــــن پــه تشــه تــرانــه

مینه غــواړي، کار غــواړي، کالي غــواړي، ډوډئ غــواړي
دا ده د اولــــــس د ارمــــانـــدونـه نشـــانــه

زر او ســل خــبرې ســر یــې یو: دا خلک کار غــواړي[۲]
خـــو – جـــوړه لــه ســرکار شــوه د خــبرو کارخانه

څــوک چــه وي کاهــل نو دا ملت بــه هم جاهــل ګڼي
"دیـــــوانه به ده خـــــندد و ده بـــه دیــــوانــه"

څــو چــه خـلک مست شـــي د وطـــن پــه محبت باندې
ولـــیکه شـــعرونـه بخـــــــتانیه! مســـتانه

عـــبدالله بخـــــتانی

---

یادونې:

(۱) – په یو ګل نه پسرلی کیږي. (پښتو متل)
(۲) – سل خبرې سر یې یو. (پښتو متل)

# زړګـــــیه!

پــــورتــه شـــه زړګـــیه غـــزل وایـــه مســــتانه!
ګـــډا کــــوه! نڅــــاکــــوه! دیـــوانه دیـــوانـه

دلـــته هـــوښـــیاري، شعـــور، احساس څه حاصل نه لري
ځــه مســـتانه ګـــرځه پـه ویـــــرانه ویـــــرانـــه

دتــل ژونــــدون دپـــاره شــهامت او شـــجاعت وکــــړه!
دحســـن پـه ډیـــوه بانــدې خـــپل ځان کـــړه پـــروانه

ژونـد د حـــرکت او د خـــدمت حقـــیقـي نــوم دی
وســـــوزه پـــــه اور بــــانــدې د بتــــو بتــخانه

ستا پـه مـال دولـت بـانـدې نـور ځـوانـان مسـتي کــوي
پـاڅـــه ورشـــه وګـــوره د مـــــــیو میـــخانـه

پـه مـړو مـړو کـتلو کښـې د غــم نه بل څه نشـــته دی
ځـه سـاقـي نـه واخـله د ســـرو ســـترګو پیـــمانه

مســـت شـــه پـــه مســـتۍ کښـې په رقیب باندې حمله وکړه!
ځـــان ورځـــینې خـــلاص کــــړه د نیشــــې پـه بهـانـه

لاړ شـــه خـــرابات تـه لـه رندانـو ســـره یـوځـای شـه
مـــاتـې کـــــــړه پښـــو نـه دې د طـــمعـې زولانه

ځـه لـــــکه انســـــان غـــونـدې له خـــلکو سره انس وکړه!
پـریـږده چـه زاهـــــد لـه خـــــلکو ناست وي بیـــګانه

شـیخ چــه د خـــپل مـــیخ د کلـــکولو دم دعـا کـــوی
تـه هـم خـــپل ســـر کښـــیږده د مـــیخــور پــه استانه

دنیـا پــه حـقـیـقت کـښې آزاد ژونـد تــه پیــدا شـــوېده
ژونـد د انســـان خـــوند کـــړي پـه رښـــتیا ازادانه

دوره د ژونــدانـــه خـــو پـــه هـــر قســم تیــریدونکې ده
ښــه ژونـــدون هغـــه دی چـــه یـې کـــړي عـــاقــلانــه

تـا کـــه پــه (مســتئ) کـښــې د عـــزت دپـاره کار کـــړل
اوس بـــه درنـــه جـــــــــوړه وه د درو دردانـــــــه

ویـــارمـــه چـــه تـــه هـــم د مســـتانو ســـره یـار شـوې
پـه ګــــډ اواز بـــه وایـــو د غــمـــونـــو تـــرانـــه

چـل ول او غـــولـــولـــو تـــه رقیب چـــه ســیاست وایي
پـــه خـــپله یـــې خـــپل ځـــان کـــړ د غـــنمو سیاه دانه

ګفـــتار دې پـــه یـــو رنګ (دی او) کـــردار دې پـه بـل رنګ
اخــــر بـــه غـــوبـــل جـــوړ کـــړي دا دوه رنګې زمـــانـــه

بـاور وایـــي مـــلګـــرو د ژونـــدون ښـــکلا خـــو فکـــر دی
راځـــئ چـــه اول ړنګـــه کـــړو د فـــکر جـیلخـــانـــه

سـیدرحمان باور رحیمي

روزګار جریده، ۳۱مه ګڼه، د ۱۳۵۰ د ثور ۲۹ مه

# آب و دانه

واوښتې [۱] پیړۍ شوه رانه تیره زمانه
نښتی یم د تمې د دامونو په دانه

نه مې متې کار کړي نه مې لاس د عقل رسي
هسې رنګ افسون دی هسې شانې زولانه

ژوند راپورې خاندي زلمیتوب راته ویرونه کړي
څکم د زړګي وینې پیمانه په پیمانه

اه زما قسمته چه دا څه رنګې بلا یې ته
نه متاع د دین شوم نه د دهر فرزانه

هیڅ مې حاصل نه کړو په دې ډیرو خوشامندو کښې
داغ مې د تندي شو ذهنیت غلامانه

اب مې د مخ ویوړلو یوې خیټې د پاره
اور دې په نصیب شي او په دې اب و دانه

ډیر یم غولولې دی ژوندیو زیارتونو زه
نوره مې توبه شه له خانقا او استانه

چاته عرض وکړمه او چاته ګریوان څیرې کړم؟
یومې غوښې غواړي بل هڅه وکي شکرانه

لاس راکړه ای پلاره د وختونو د نجات په نوم
سیند یمه اخستی توفانونو مرګانه

نـــور غـــمونــه څـه کـــړې؟ مـاســـره غـم ددې خـبرې دی:
مـــري د ننـګ غــــيرت د جـــوشــــه ډکـــــه تـــرانه

زړه تـــه رانـــژدې شــــه چـــه د زړه پــــه غـــوږو واورې څـه
دا خـــــبرې نــــه شــــــي په نـــاول او افـــــــسانــــــه

بخــــــت مې د ســــيزلو او تنــــدی مې د داغـــــلو دی
نـــــور مـــــې د ځـــان نــــه کــــړه رانـــه خپل شـــــو بيګانه

نـــه هغه خمــــــار شـــــــته نه غــــرور په ســر کښې پاته دی
نـــه هـغه سـاقـي شـــــــته نـــه بـــــاده او ميــــــــخانه

زه او زړه ســـــره پـــــاته په حــــــيرانه حيرانئ کښې يو
ديـــــــوانه بـــــه ده خـــــــــــندد و ده به ديـــــوانه

ګــــــوره ســـــيندنيه! خـــــپله خــــوله درته بلا نه شي
مکـــــــړه دا د ژونــــــــد خـــــبرې هـــــــسې رنـــدانه

ســـــــــيندنی
روزګار جريده، ۳۲مه ګڼه د ۱۳۵۰ د جوزا پنځمه

---

يادونه:

(۱)– په اصل کښې: راوختې

# زما ترانه

نه تیروم عمر بیهوده په زمانه
نه کومه زه د لیونو غوندې کانه

درومه نامراده ساقي وچې شوندې ښه یمه
مه ښوروه ماته کوزړې او پیمانه

زه چه لا د څښلو ګوټ اوبه ګړي کې نه لرم
شم په کومو سترګو به دیره په میخانه

بې د یار د وروځو له محرابه به هیڅکله
هسک سر ښکته نه کړمه په بله استانه

نن چه د هوښیارو ګریوانونه ریتې پیتې شول
پوه په دغه راز و له پخوا نه دیوانه

زه به زمانې ستا د سیلاب لوری بدل کړمه
ما ته هم پښتون وایي که ته یې زمانه

څو چه ددې خپلې پنجرې هر څه ګډ او وډ نه کړم
وبه نه خورم نوره د ژوندون آب و دانه

زه به یې د خپلو ارادو نه نظرماتی کړم
څه که اوس د چا سر وته زه شوم نذرانه

ستا په باده مست نه یم ساقي! نه دې منت وړمه
زه یم د ازل په میو هسې مستانه

ما صیاده! ستا د ټګۍ لومې ښې لیدلي دي
ځه! بل څوا اوار کړه د فریب دام و دانه

زه قفس د مینې که په ساز نور سوزوی نه شم
خاورې او ایرې به کړمه خپله اشیانه

نوک او ورځ به بېلې څنګه څوک د یو وجود کاندي
څومره ښه په ځای ده دا خبره امیانه[1]

هر څوک بدلولې په تدبیر سره تقدیر شي خپل
څوک چه وایي نه! ده یوه خوشې بهانه

زه په زړه د عمر[2] ډېر داغونه اتشین لرم
څه به کړم خندا خماري سترګې جانانه

څنګه به د مخ رڼا په زلفو رانه پټه کړي
زه په دغه فن کښې یم استاد د پروانه

ډېره ترې ښوروا د خپلو مټو په محنت ښه ده
زار خوړلی ښه دی نه د نورو پسمانه

زه چه د خپل فکر په ازادو وزرو الوزم
ما شکولې وخته دا د تمې زولانه

ما ته که "مرګ" وایې هم په نره ژبه یې ووایه
خدایږو که مې خوښ شي دا خویونه زنانه(۳)

کله څوک د دار په سر د حق ناره کولې شي
خوښ مې د منصور دغه صفت شو مردانه

زه د عشق په لاره کښې له خپله سره تیر یمه
پوچ پروا مې نشته دی په خیل او خیلخانه

تا که د خپل ملک(۴) د خزانو سحر مات کړې وای
وه به په قدم قدم کښې ګنج او خزانه

زه مجنون د قام او د وطن یم د لیلا نه یم
کړم به په جنت بدله دغه ویرانه

راشه! په خیر راغلې! ښه چه مل د لیونو شولې
دلته مونږ کښې نشته څوک د مینې بېګانه

پورته شه! اوچت شه! په همت د کهکشان په لور
مه لټوه خاوره کښې د ستورو نښانه

جوړ به د اسمان سپوږمۍ امیل ورنه د غاړې کړي
څوک که ورته یوسي زما دغه ترانه

نصرالله حافظ

---

یادونې:

د شعر ماخذ: نصرالله حافظ، د شمشاد له هسکې څوکې، کابل، ۱۳۶۲ هـ ش، ۸۶/۹ مخونه.

په دې ماخذ کښې تر عنوان وروسته ليکل شوي دي: "دا شعر مې د رحمان بابا د يو مشهور شعر په اقتفا ليکلې دې چه وايي

ډېر عمر مې تير کړ بيهوده په زمانه
نور دې زما سر وي او د ترکو استانه

ما يو وخت له حافظ صيب نه پوښتنه کړې وه چه ايا هغه د رحمان بابا د دې شعر پيروي کړې ده؟ هغه راته ويلي وو چه "هو! ما د مجروح صاحب او الفت صاحب د شعرونو د اوريدو نه وروسته په دې لړ کښې شعر ليکلې او هغه وخت ما دغه شعر د " زيري" جريدې ته ورکړ او هلته چاپ شو. او د" شمساد له هسکې څوکې" په مجموعه کښې هم شته"

کله چې ما د زيري د ۱۳۵۱ هـ ش کال د کليکسيون د ميزان د ۲۶ مې نيټې په ۳۱ مه ګڼه کښې دغه قصيده ومونده نو دواړه مې سره پرتله کړه او دا توپيرونه پکښې څرګند شو.

(۱) دې بيت پسې په زيري کښې دا بيت هم شته

خدايږو که به رپ قدرې له ځايه ښخه ووهي
دا مړ اس که ووهې هر څو په تازيانه

(۲) په زيري کښې: د هجر

(۳) په زيري کښې: طفلانه

(۴) په زيري کښې: (دخپل ملک) پرځای (دوطن) او په دوهمه مصرع کښې د (وه به په قدم قدم.....) پر ځای (اوس به د قدم قدم.....)

# د جېلخانې خوب

خوب وینم عالمه! که یې څوک راکړي مانه[۱]
پروت یم سر مې ایښې د خپل یار په زنگانه

خوب وینم چه پورته په هوا لکه د باز شومه
کښېناستم په بام د محمود سترگې د ایاز شومه
پورته د خاموش زړگي نه خوږ د مینې ساز شومه
خرڅه مې په حورو کړه د ډمو زمانه

خوب وینم چه ناست یم د جیندي[۲] په یخه غاړه
شاه مې سویلو کښې لکه سره شمعه ولاړه
سرې شونډې موسکۍ شوه ماتی[۳] وې چه ژاړه ژاړه!
څکه دې د زړه وینې دا شراب دي مستانه

خوب وینم چه باغ دی د گلونو او ماښام دی
سرې سترگې ساقي د ساقي سرو گوتو کښې جام دی
لاس په سیتار پروت لېونی مست لکه خیام دی
اړئ[۴] پرې نرئ نرئ د مینې افسانه

خوب وینم چه سپینه سپوږمۍ پاس په خندا راغلله
ماله محبوبا په شرم شرم تر خوا راغلله
شونډو کښې شراب او په کوکئ کښې قضا راغلله
سور خماري يې راکړ پيمانه په پيمانه

خوب وینم چه پټ شوم په نسیم کښې بهر لاړمه
خوا له د جانان لکه د میني نظر لاړمه
سترګو د دلدار له لکه خوب د سحر(۵) لاړمه
یو شرنګ کښې مې لوټ کړه د غمونو خزانه

خوب وینم چه زه لکه لولکه په سیل ووتم
پورته د نرګس نه شوم په خوا د رامبیل ووتم
تاو د سپینې غاړې د لیلا په امیل ووتم
پټ مې ورته ووې سلامونه جانانه

خوب وینم چه پورته لکه چیغه د منصور شومه
یا یو موتې خاوره وم یا لوی دریاب د نور شومه
خو بانګ د سحر وشو زه را ویښ شوم کر و کور شومه
خوب یوړل خوبونه را ژوندئ شوه زمانه
وې: پریوزه لېونیه! تېروه دې جېلخانه! (۶)

عبدالغني خان
حیدراباد جیل – ۱۹۴۸ م

یادونې:

(۱) مانه – مانا، معنا، معنی – زما په ماخذ کښې معنی
(۲) جیندي – د هشنغر د مینځ هغه سیند دی چه ددې علاقې اته واړه کلي یې په غاړه پراته دي.
(۳) تی – ته یې.
(۴) اړئ – اړوي.
(۵) زما په ماخذ کښې صحرا
(۶) د شعر ماخذ د غني خان کلیات، کابل، ۱۳۶۴ هـ ش، ۱۹۸۵ م – ۴۷۳ م مخ

دا شعر د ‹ادبي سوغات› د مشاعرې نه د مخه ویل شوی دی په وزن او قافیه کښې د رحمان بابا د شعر پیروي پکښې شوې ده، مګر په لړ توپیر. داسې چه د رحمان بابا شعر د غزل په فورم کښې دی او د غني خان شعر چهاربیته ده. په پیرویو، اقتفاګانو او مشاعرو کښې دا کار جایز دود دی، نو ځکه مونږ دلته را واخیست.

دا چهاربیته د لرې او برې پښتونخوا په خپرونو کښې بیا بیا خپره شوې او سندرغاړو هم بیا بیا اورولې ده.

# غزل

هر څوک که مې وازمايي دا ستا په يارانه
اف د شکايت به مې وانه وري زمانه

زه دا ستا د مستو سترګو هغه خمار نه يمه
کوم چې يې چاره کولی نه شي پيمانه

په ښپو کښې مې پرتې دا ستا د مينې زولنې دي
دا چې لېونی يم نه يم سر په ويرانه

څوک چې خپل ټول ژوند يوې شېبې رڼا ته بخښي
زه يم ستا د مخ شمعې ته هغه پروانه

حور، غلمان او واړه جنتونه دې د شيخ وي
زما دې يو پوزی ځای ستا په ښکلې استانه

دا چې مې ښکلا سره کلام دی پېيل شوی
دی ستا د جمال تفسير مې هره ترانه

ورکړه چې کمين د زړه دردونه پرې تسکين کړي
خپل د لاس دسمال ورته د مينې نشانه

برکت الله کمين

دښاغلي برکت الله کمين د شعرونو له خطي مجموعې څخه، په مننه

# د سرمحقق خدمتګار
# له خوا
# چاپ ته تیار متنونه

١ –د باچا خان لیکونه – دوهم ټوک
٢ – تازه ګلونه – د ١١٢ اوسنيو شاعرانو د ۴٨۴ شعرونو انتخابي مجموعه
٣ – ديوان قاسم قاسمي چهارباغي (په فارسي ژبه)
۴ – د نعيم جان سندرې
۵ – د بياض ديوان
۶ – د احمدګل شاعري
٧ – د ورو لوبې – د بينا صاحب ليکنه

د رحمان بابا د شعر په اقتفاکې

# غزل

آ چې خرڅول يې شورنخود او ګندنه
اوس يې د وطن په سر اخيستې بيانه

لا خو مات بنګړي دې د روسيې په غېږ کې وينمه
ولې دې بدله دومره ژر کړه يارانه؟

څنګه په هغې ژبې خبرې د حيا وکړو
نشته چې توپير پکې د نر او زنانه

غواړم دانه دار سرې له تا ځنې وطن لره
نه غواړم کندهاره! ستا انارې بېدانه

ولې راته خپل وطن پردې پردې ښکاريږي نن
زه شوم بېګانه او که دا خلک بېګانه

مونږ خو د منو غله هم په توره شپه کې پېژنو
يار خو لا په بدۀ وهي غټه هندوانه

مونږ خو ترې اميد د لوړ پرواز او ترقۍ کاوه
خو! دې زړې ابۍ مو په باز څه وکړه کانه

ته هم څه صحرا ته لېونيه د حفيظ په شان
غواړې که عفت دې د شلېدلي ګريوانه

ح.ن پيرزاده
سویډن - ستوکهولم، اګست ۲۰۰۴